

# دخوشال خان ناز

ښاغلی عبدالشکور رشاد

خوشال خان پر ژ کندن وي ننګياليو
سرو مال د پښتنو تر ننګه جار
او ارمان را سره ودم تر تورو خاورو
چې مې نه لید د پښتون د بڼ بهار

که خوشال په حسرت داغ زړه ځنې درومي
خدایه ته لا سره مسرور د قسام ګلزار

دا یو ناز به د خوشال پوسی نیاز منو
په مرګ مه منه پښتنه غلیم ته خوار

که به ژوند کومی ترسره نه شوه هدف
پسله مرګه مې هوري جوړ کې مزار

چې به عمر پرې او ښدای سو مېړانو
د مغل د آس د سمو ګرزو غبار «۱»

---

«۱» دا موضوع علامه اقبال په اردو کې هم راوړې ده.

## ددې ګڼې مضامین

مسئول چلوونکی
ا، م «ګرزی»
اداره د شهیدانو واټ
[ د دولتي مطبعې څنګ ته ]

# کندهار

میاشتنی خپرونه
ادبي. تاریخي. اجتماعي. علمي

کالنی «بیه»
په کندهار کښې [۴۸] افغانۍ
په دننه مملکت کښې [۴۴] «
په د باندنیو هیوادو کې یو ډالر

ګڼه [۱۰] لمریز کال ۱۳۴۰ د جدی [۲] د میلادي کال ۱۹۶۱ د دسمبر [۲۳] پر له پسې ګڼه [۴۲]

## د بشر فکر

له دې امله انسان د نورو مخلوقاتو نه ښاغلی دی چې د فکر او وینا خاوند دی . د فکر په څرنګوالي کې له پخوا زمانې څخه بیا تر اوسه پورې پوهانو ډېر څه ویلي دي خو په نتیجه کې دې خبرې ته رانږدې شوي دي چې فکر د انساني مغزو محصول او وظیفه ئې د مادي شیونو پېژندل او تجزیه کول دي، له دې څخه دا جوته شوه چې د فکر غایه د شیونو حقیقت موندل او د مادي بټ رازونه راڅرګندول دي او همدې ته د رسېدو په لار کې بشري فکر ډېر ربړونه لیدلي او ډېرې ستونځې ئې ګاللې دي، دا چې کله، کله هم موږ د ولسونو د فکري سیر په مطالعه کې مدوجزر وینو د همغه علت دا دی چې ځینو انسانانو د خود غرضۍ او منفعت پرستۍ باد د بر جهالت له امله د فکري سیر د تکامل مخه نیولې وه .

اېکن خدائي قانون او د طبیعت نه ماتېدونکې دود همغه خنډونه له منځه وړي دي چې د فکري سیر مخه ئې بندوله، موږ چې کله د ولسونو فکري سیر ته ګورو نو دا خبره راڅرګندېده شي چې ډېرو اجتماعي محدودیتونو د بشري فکر د پرواز وزرونه تړلي وو او هر کله به ئې د فکري سیر د کاروان په لار کې یاغزي پاشل یا به ئې د فکر پر حقیقت بېنو لیمو خاورې پاشلې همدارنګه چې د انساني ټولنو د ژوند په ګرچاپېر باندې د طلسماتو او خرافاتو تورې اوربځې را خپرې شوې وې چې تر ډېرو پېړیو پورې دې راز تورو تیارو پر نړۍ حکم چلاوه اما د فکري سیر پرښېښنا د ازلي دود سره سم د اوربځو په زړو کې خپله لار وهله او د حقیقت ومږله ته ئې ځان رساوه . دا خبره د تل د پاره په یاد ولرئ چې د فکري او اجتماعي نهضت مېرڅمنو هر کله د تاریخي پېښو د جریان په ترځ کې هڅې کړې دي چې د بشري فکر دارتقا او د ولسونو ډېر مختګ مخه و نیسي که څه هم د یوې لنډې مودې د پاره ذوی بریالي شوي دي چې د تیارو بوون پر ځای و دروي اما د کاروان سیر ئې له خپلې لارې څخه اړولی نه دی . که چېرې د انساني ژوند د اوږدې مهال څخه د فکري سیر ور برانیتي وای نو ډېر پخوا به لا د ژوند دانه پېچلې مسئلې حل شوې وای او بشر به د پوه خوندور او په زړه پورې نیک مرغۍ په غېږ کې آرام پروت وای خو د منفعت پرستۍ او استثمار له امله چې بنسټ د ټولو اجتماعي بدبختیو دی د بشر دا هیله تر سره شوې نه ده، او د حقیقت د رسېدو په لار کې خوار کوټ‌ـی فکر ډېر

[ نور په ۱۴ مخ کې ]

بناغلی بېنوا

# د روښانیانو مجاهدې

[ د تیرې گڼې پاتې برخه ]

پاتې کشمیری پدې الفاظو ددې ستاینه کوي . د بایزید نه پس جلال الدین او چت مقام ته وخوت او د پرزبات استقلال ئې ومونده عادل او باضابطه سړی ؤ .

جلال الدین هم لکه د خپل پلار په شان د هندی مغلو د پرغل او تجاوز خلاف ملاوتړله د تیرا او نورو علاقو نه ئې شل زره پلي او پنځه زره سواره د یو لښکر په شکل راغونډ کړل پدې کې اکثر ځوانان افریدي، یوسفزي مومند او غوریاخیل ؤ . دوی اول پــه پېښور کې د مغلي حکومت په نیول کېدو پر سید حامد بخاری باندی حمله وکړه هغه ئې وواژه او بیائې د پښتنو د ملك نه د هند د مغلي قراؤ د ایستلو په کار لاس پوری کړ چې آخر په ۹۹٤ کې اکبر پاچا یو لوی او قوی لښکر د کنورمان-سنگهه د کمــان لاندی او د خواجه شمس الدین په مرسته د جلال الدین مقابلې ته ولېږه

او هرڅو د دښمن او پرغلگرو فوجی طاقت ډېر زبات ؤ خو سره ددې هم پښتنو د جلال الدین روښان په مشری د خیبر په دره کې له دوی سره سخته مقابله وکړه او پرغلگران ئې د ترخو مرغو په شــان پرې ایستل اکبر نور تازه ملاتړ ورته را ولېږه خو جلال الدین په ډېره مېړانه پوره یــو کال د خپلې خاوری او آزادی دفاع جاری وساتله او پرغلگرو پرې بری ونه موند پــه ۹۹۵ھ کې اکبر پاچا یو ځل بیاد ښکښو پهلار د پښتنو په خاوره حمله وکړه خو دا ځل بیا جـلال الدین د پنځلس زرو پلیو او یو زرو تنو سورو په مرسته ددې پرغل مقابله وکړه او سره ددې چې په دغه جنگ کې یــو نیم زره تنه پښتانه ځوانان مړه شول خو بیا هم د دښمنانو لښکر د پښتنو په ایل کولو کې کامیابی حاصله نه کړای شوه دي نه پس جلال-

الدین هم لکه د خپل پلار په شان تیراته وخوت او هلته ئې ځای ونیو ده په دغه ځای ته د پر دښمنانو حملې کولې چنانچه په ۹۹٦ھ کې د صوات باجوړ علاقه د پښتنو او د هند د مغلو د پــرغلگرو لښکرو منځ کې سختې نښتې وشوې خو لکه چې د دښمن لښکری خوری شوی نو جلال الدین هم بیرته خپل تیرا ته راغی پدې ترتیب ٿو سنه یو زر پوری د جلال الدین روښان د دفاع او د جلال الدین اکبر د پرغلگرو فوځو او منځ کې نښتې او جگړې جاری وې چې آخر جلال الدین اکبر په سنه یو زر کې بیا یو عظیم لښکر د جعفر-بیگ، آصف خان او قاسم خان د مشری او کمان لاندی د جلال-الدین د مقابلې د پاره وگماره خو دوی هم د زور او قوت په وسیله د هندی مغلو استعماری مقاصد مخ کښې یو نه تلی شول او له ې کبله ئې په ساز شو نو او لالچونو لاس پوری کړ او دغی حربې ئې تاثیر هم وکړ، پښتانه په خپلو کی بې اتفاقه شول او غــزنی جلال الدین هغه جلال-الدین چی د هندی مغلو اری *

طاقت وانه وهلی شو دپردو په لمسون په خپله دپښتنو دلاسه ووهل شو. دده دوه وروڼه شيخ عمر او خير الدين دلازا کو ووژل شو او بل ورور ئي نور الدين د دښمنانو په لمسون مومندو واژه او له جلال آباد نه په دره د مومند زوړ نيراته ستون شو او دغلته يو محل بيا د خوشحال خټك دي شعر خپل مصداق ومومند چي وائي:-

په بل غشی بل تویك و بشتلی نه یم
كه و بشتلی یم خو بیا بخپل تویك یم

سره ددي هم چونكه جلال الدين نه د دښمن په مقابل كي لاس تر زني كښيناستل او په ګناه ښكار پده نو ميدان ئي پري- نښود او په سنه [۱۰۰۷ هـ] كي ئي د نوري په زور غزني د دښمن دلاسه آزاد كړ او دوه كاله ئي پر غزني باندي مستقل حكومت وكړ چي آخر په ۱۰۰۹ كي پرغلګرو په اوى طاقت پري حمله وكړه او اوږده ورځي خونړي جنګ جاري و چي په آخر كي جلال الدين د يو سړي دلاسه چي نبادمان ئي نوم و زخمي شو او د غزني نه درباط غره خوا ته په تلو مجبور شو ولي هلته د مراد- بيګ نومي يو سړي دلاسه شهيد شو سر ئي د اكبر دربار ته راوړي شو. او د هغه مغلي دربار پدي كاميابي ښادنامي وږغولي خو د هغوي ښادنامي لا آخر ته نه وي رسيدلي چه د آزادي غوښتلو مشعل او درو ښانيانو د ګورني د مبارزي بيرغ د جلال الدين زوم د ميار وښان امسي او د شيخ عمر زوي احداد اوچت كړ او د دښمنانو ستر ګي ئي وبر ښولي. احداد د خپلو پلرو نو نيكو نو په لار قدم واخيست او د دښمنانو مقابلي ته ودريد. خاني كشميري د احداد په ستاينه كي هسي وايي:-

احداد يو عادل او با ضابطه انسان و، د خپلو ښاغلو او نماڅلو نيكو نو په قاعده او قانون روان پاتي شو، هر چا ته به ئي خپل حق رساوه او په جهاد كي چه به كوم مال واجه او غنيمت شو نو د هغه پنځمه برخه به ئي په بيت المال كي داخلوله او په غازيانو به ئي وېشله. هغه وخت چي احداد د پرغلګرو خلاف ميدان ته راووت نو د اكبر پاچا وروستۍ او د هغه د زوي جهانګير او مري شپې ورځي وې.

احداد په سنه ۱۰۳۰ هـ كي ځان كابل ته راورساوه او د كابل په شاوخوا كليونو ئي د پرغلګرو سره جنګونه وكړل.

دا وګړ د څرخ په علاقه كي چي د احداد سره كوم جنګونه شوي دي جهانګير په خپل كتاب كي د هغو يادونه پدي شان كوي:- احداد پښتون چي له ډيري مودي راهيسي د كابل په غرنيو سيمه كي په سر كشي او فتنو پيدا كولو بوخت دي د پرزيات پښتانه ئي په ځان راټول كړيدي زما د لوي پلار اكبر له وختونه تراوسه پوري چي زما د تخت- نشيني لسم كـــال دي دده د مقابلي دپاره همېشه پوځونه مقرر او تعين پاتي شويدي. د احداد او جهانګير منځ كي يو خونړي جنګ داسي هم شويدي چي پكښي دري زره پښتانـــه ځوانان د خپلي آزادي په لار كي شهيدان شول.

دهغه د مغلو په پرغلګرو پوځونو باندي د احداد د حملو سلسله تر ۱۰۳۵ هـ پوري اوږده او جاري پاتي شوه ولي په همدغه كال د [توا غر][اواغر] په علاقه كي د يو جنګ په ميدان شهيد شو وائي چه كله دي شهيد شو نو د

د دښمن بوځیان دده کوټ ته ننوتل او هلته ئې ولیدل چې د یوې پښتنې نجلۍ نه پرته بل یو کس هم د احداد په ملګرو کې ژوندی نه ؤ پاتې او دغې پښتنې نجلۍ هم چې څه وخت اجنبي سپاهیان ولیدل نو ځان ئې د کوټ د برج نه کښته را ګوزار کړ او داسې ئې د غلامۍ په ژوندون باندې د پاکۍ او عزت مرګ غوره کړ او دائې هم دښمن ته وښودل چې د پښتنو په خاوره چې یوه نجلۍ هم پاتې وي نو غلامۍ ته به غاړه پسته نه کړي.

د منتخب اللباب نومي کتاب خاوند لیکي چې:-

کوم وخت چې د احداد سر د جهانګیر دربار ته یوړل شو نو هغه یو لوی جشن جوړ کړ او خپلو بوځو ته ئې مبارکي ور کړه.

د احداد په مرګ هم د روښانیانو تحریک ختم نه شو او د احداد نه پس د هغه زوی عبدالقادر د آزادۍ بیرغ پورته کړ. ده په ۱۰۳۷ هـ کې د تیرا په خرمانه کې د مغلو په ظفرخان صوبه دار حمله وکړه، ډیر مغلیان ووژلي شول او مالونه ئې پښتنو ته په غنیمت کې ورسیدل. د عبدالقادر حملې تر ۱۰۴۴ هـ پورې جاري وې او د هغو نه پس په پوره ځنګل زاره علاقه کې د سعید خان مغلي صوبه دار له طرفه ونیوی شو د شاهنشاه دربار ته واستول شو او شاهنشاه هم دی فرار کړ چه آخر په ۱۰۴۶ هـ کې په پېښور کې وفات شو.

د عبدالقادر د وفات نه پس د میا روښان لمسی او د جلال الدین زوی الله داد ملا وتړله او د خپلو پلرونو او نیکو په شان ئې د یرغل ګرو په خلاف میدان ته ودانګل. صمصام الدوله په ماثر الامر نومي کتاب کې دده په حق کې لیکلي چې:-

الله داد یو زړور او یو ټینګ سړی ؤ دی په نیک فکر راغلی او د اخلاقو په پاکۍ کې بې جوړی ؤ هر څوك دده اخلاص مند او فدایان ؤ چې آخر شاهنشاه په دکن کې دده د تانیر خور پدو نه وبیر پد.

دده زوی او ورور لا د جهانګیر د پادشاهۍ په موده کې د ګوالیار په کلا کې بندیان ؤ چې آخر دی هم د هندي مغلو د دربار د اجنټیانو په لاس کښېوت او جهانګیر په شړو انتیا محکوم کړ. دی د شاهنشاه په وخت کې په ۱۰۵۸ هـ کال کې په دکن کې وفات شو. د جلال الدین بل زوی کریمداد هم د هندي مغلو د امپراتورۍ خلاف ودرېد او ډیر جنګونه ئې وکړل چې آخر د خزانو خوړلو په زور یرغل ګر پدې کامیاب شول چې دی ونیسي. کریمداد د شاهنشاه په حکم په ۱۰۴۷ هـ کې ووژل شو او دده په مرګ د روښانیانو د کورنۍ د روڼتیا څراغ هم مړ شو.

داؤ د یوې پښتنې کورنۍ سرګذشت او ماجرا د هند د مغلي امپراتورۍ په دور کې. اوس ګیرو پیرنګي او د هغه هم خیال خلك دا اندازه لګولی شي چه د هند د مغلي حکومت د یرغلو نو متعلق په دغه زمانه کې د پښتنو خیالات او جذبات څه ؤ؟؟؟ [پای]

ښاغلی ئومیالی

# زما کتابخانې

زما هره کتابخانه له لومړي سره څخه بیا تر اوسه پورې په داسې ترتیب راغلې ده چه شل یا پنځه ویشت پنډه او تر کتابونه دي چې یو څه ئې په زاړه زنګ وهلي بکس کې یو پر بل پاندې پېړوله پراته او یو څه ئې تاشي پتاشي تر دوړو لاندې دخوني په تاخچه کې زما دمطالعې انتظار کوي . هر وخت زما دهری کتابخانې وضعیت دغسې دی او د آینده دپاره هم داهیله را ښکېنې وژل سوې ده چه زه دي دیوې داسې کتابخانې خاوند سم چه فیشني خلک ئې خپل ترمنځ (لایبریری) بولی . لیکن زما کتابخانه چې زما په خیال یوه خو بائې اری هغه داده چه پر یوه قرار نه ده پاته سوې، بلکه زما د تحول له دورو سره ئې سم تغیر کړی دی او زما د ژوند په پهلو، پهلو فاصلو کې څو واره په خپلو محتویاتو کې الیشه سوې ده . څرنګه چې زما دهری دوری کتابخانې ده غې بلې دوري له کتابخانې څخه د کتابو د ماهیت له پلوه ښه ډېر فرق کړی دی نو ځکه زه ویلای سم چې ما د خپل ژوند په تاریخ کې یو شمېر کتابخانې درلـــودلې دي .

زما لومړی کتابخانه چې زما د پلار په رو پورانه سر ښېنه سوې وه په هغې کې دلمانځه، او داسې، عقایدو او داسې نور کتابونه وه چې ما له ئې تر هر څه دمخه د آخرت د عذابو نو هولناکه منظري ذونه را نژدې کړي دي چې د کوچنی والی د بازیو ډك زړه ئې د ګروم په شکنجه کې راسانلی وو او د طفولیت په لاابالي دنیا کې ئې دا دول حساس کړی وم چې د آخرت له زحمتو څخه د خلاصیدو دپاره مې په تپ معصومیت کی دورځی او د شپې عبادتونه کول او ددې دپاره چې ایمان مې د شیطان له زواله څخه په امان سي نو د زهد و تو او خوا ژنه مې لاس اچولی وو .

څو زما نه وروسته نه یم خبر چې زما ځان ئې علت و بولم او که زما جهان، خو په هر صورت دا لومړی کتابخانه مې په یوه بله کتابخانـــه الیشه کړه . د لومړي کتابخانې کتابونه مې په نیمه بیه یا په پوره بیه خرڅ کړه او په عوض کې مې د کیمیا-ګری، یوناني طبابت، رمل جفر او تعویذاتو نـــوی او زاړه کتابونه ولاس ته راوستل او دوهمه کتابخانه مې تیاره کړه . لکه څنګه چې زما مفلسي ددې باعث وه چې د کیمیاګری ته لاس واچوم دغه رنګه ددې باعث هم سوه چې په دغه لومړي سر کې لاس ځني واخلم ځکه د هیڅ نسخې د جوړېدو دپاره مې مالي توان نه درلودی .

په یوناني طبابت کې چې مې بیا لیده چې د هـــری دوا د مضر خاصیت د مـــخ نیوی دپاره یو مصلحه دوا هم ورسره ګډیږی او هره مصلحه دوا بیا خپل مضر خاصیت هم لري نو زه د یوې نسخې د عملي په نتیجه کې نه پوهېدم چې آیا دا مصلح او مضر نه که تریا به اداما ور کول سی نو څوك کامیابه ګېدلای سی

چې په خپل ټول عمر کې یوه نسخه تیاره کړي او که ئې تیاره هم کړي هغه به دصحت دپاره مضره وي ځکه له دې مضر طبابته څخه هم زما خوا ټوره سوه .

درمل، جفر، تعویذات او اوراد او د پرو تمرینو چې زما دماغ خراب نکړه نو د ارمریکه او اوستړیه ترمنځ ئې ماهیڅ واقعي فرق ونه لیدی .

له دې جملې خبري ئې وبولی چې زما دوهمه کتابخانه ئې هم نکانی کړه . ددې کتابخانې کتابونه مې هم داسې په بوڅوړ ځو کې له بکسو را ووتله او له تاخچو را کښته سوه او په لږ پایه ټپرې بیعه پرخپله خوا ولاړه .

ما ته چې دخلکو ترمنځ عنعنوي تعصبونه او عداوتـ ونه داسې معلومیده چې د بې غورۍ او ناپوهۍ څخه راپاڅېدلی دی او دطبیعي ژوند خوشالۍ او پراخه دنیا مو دعنعنوي ژوند په غمجنه او تنګه دنیا له لاسه ورکړې ده نو په دې سلسله کې د اسلامي فرقو ترمنځ هـ انه د تحقیق قضاوت او تطبیق اشتهارا ولاړه سوه . څرنګه چې زه هر کله د خپلې محدودې کتابخانې پر الیشو او غېښتلی وم نو په لږ ورځو کې مې له هغو کتابو څخه دریمه کتابخانه تیاره کړه چې د اسلامي پاچهیو په پرم کې په ئې بنائي د ټر سیاسي اهمیت درلودی، څه سره و پر له ګرزوم دیوناني فلسفو نه زما لار ورووتله او اندر په بولږ موده کې زما کتاب‌خانه دیوناني فلسفو او منطقو کتابو پرسر واخیسته . ددې کتابو دوبلو او ځان په پوهولو ستړیاري مې تراوسه پورې لا له زړه څخه نه دی وتلی . خیر د بېړ یـکښي ستړی سوم اما زما لار ئې و داسې خوانه نه وا یسته چې زما قناعت تامین کړي .

له داسې چا سره په مخامخ کېدم چې هغو به هر کله راته ویل چې تا خو ګرزده زاړه شیان وبلي او کتلي دي مګر اوس په امریکا او یورپ کې داسې فلسفي علوم ومنځ ته راغلي دي چې د دنیا سرنوشت ئې ډیر په مثبت ډول سره ټاکلی دی . د امریکائي او یوروپي مدنیت صنعتي مظاهرو زما وزړه ته راڼپرو له چې دا په رښتیاوې نو د داسې خبرو تر اثر لاندې زما ودې ته مخ سو چې د احضار الارواح او نورو داسې شیانو هغه اصول ملاحظه کړم چې خلکو ئې اوې اکتشافات بولي . بدې سبب چې موږ ته خو عادي کتابونه هم په آسانه په لاس نه راتلی و داسې کتابونه خو بیا بیخي په مشکله پیدا کیږي چې د موضوع مازې نوم ئې لا چا نه وي اوریدلی . په هر صورت هغه عشق او مینه چې ما دخپل ذوق له پاللو سره درلوده نو ددې باعث هم سوه چې د داسې موضوعاتو کتابونه څـو جلده په لاس راسی او خپله بله کتابخانه پر جوړه کم . دا دامریکا او اروپا دصنعتي عصر روحاني خرافات چې ترهر څه ئې سیاسي جنبه زیاته را معلومیږي، ومې کتل، ومې ویل او عملي مې کړه خو په نتیجه کې په ورسیدم چې زما ددې کتابو او دمخنیو کتابو ترمنځ که څه فرق وي نو هغه په ژبو کې دی نه په ماهیت کې .

که څه هم دبلې کتابخانې دپاره مې لا مفکوره نه وه پیدا کړې خو دصنعتي عصر دسیاسي او هاغو کتابونه چې د علم بالشونه

ور کول سوی دی، ډېر را باندی وغوښتله او غوښتنه‌مې چې خورا ژرتې پر بازار کړم. څرنګه چې د بازار ذوق لا ودې اروپائی سوی نه‌دی را رسېدلی او پدې سبب دا کتابونه خریدار هم نلري نو ځکه جبراً زموږ په کور کی را پاته‌سوه.

کله‌مې خیال سی چې کشکی مې یوه رساله کښلې وای او په هغه کی زما د تیرو کتابخانو پر محتویاتو باندی په تفصیل سره ږغېدلی وای او اندیوالانو ته‌مې تشکیل کړی وای چې دغه لاری په هغه مداخلې چې دا ښوا زه پر تللی وم ځکه د یو نارمل انسان د پاره پرته له ستړیا او سرګردانیو څخه بله واقعی نتیجه نلري. کله‌ بیا ملتفت سم چې د زمانې سیر بخپله اوس د پر هغه دی او که سړی بخپله باطني او خارجي دنیا کی په څه و پښتلی دی او غواړی چې له خطاؤ څخه ځان په امان وساتی نو د انسانی نړی موجوده شرائط بخپله ددې بو هغی تلقین کوی چې د خالی خیالیاتو او تصوراتو پر بنا چې ونه سوی کتابونه پدې نه‌ارزی چې یا وویل سی او یا وساتل سی.

ستاسی په نو سودا بندوی چې زه اوس کومه کتابخانه لرم او که یا؟

هو کې! زه تر هغه وروسته د بلی کتابخانې هم تشکیل سوم او دا کتابخانه مې هغه کتابخانه وبولی چې شائی په بله په الیشه نه‌سی اما ممکنه ده چې ډېر انکشاف په‌وکړی. ددې کتاب خانې په کتابو کې ماته ژوند او له‌ژونده زېږېدلی سلسلې په ښوانی، اوستنی او راتلونکی جریان کی تر زیاته حده روښانه سوی دی. دا کتابخانه که بل څوك را پیښا په نکړی خو زه پخپله هم د ځان او هم د راتلونکی نسل د پاره په ښه توګه سره وساتم.

په‌دې سبب چې هغه د روحی خرافاتو کتابونه هم زموږ کره پرانه‌دی او زه یو جلا ځای هم نلرم چې هلته ئې زما له‌نوی کتابخانې څخه جلا وساتم نو ځکه‌دا بولوی مشکل وبولی خو اوس دغی په دغی می ددې مشکل چاره په‌دې کړېده چې ما د تیرو کتابو او کتابخانو په‌مقابل کی د خپلو منفی تأثراتو د اظهارولو په غرض دا یوه مختصره یادونه د روحی خرافاتو د کتابو پر بلا ګردان باندی کښلې ده چې په‌عین حال کی دری هم په ښائی سو یدی او په هغه نوو کتابو می نه ګډیږی.

یادونه: په عجبه چټکې نړی کی را پاڅېدلی یو. لومړی خو مو عمر ډېر کم دی. هغه بیا هم دوې برخې په ناچوړی خوب او خوراك کی تیرېږی. د طفولیت یوه اوږده دوره هم برخه یکښې اری. کومه لږ حصه چې را پاتې کېږی په هغه کی بیا له‌دونه دول دول اوزیاتو چټیاتو سره مخامخ کیږو چې یو پلا ورته ملتفت کیږ دل یو کم کار نه‌دی او بیا ځان ځنې ساتل یوه کوچنۍ خبره نه‌ده او بیا تنقید پر کول یوه ساده موضوع نه‌ده او له‌ما پېښه استقلال خونې لا یوه بله اوږده مجادله کښل کیږی.



ښاغلی «پاڼینو»

# کره کتنه

## —(د مذکر جمع)—

د کابل مجلې په سېږنۍ اوومه گڼه کې مې [د مذکر جمع] په نامه د ښاغلي عبدالله بختاني یوه لیکنه تر سترگو شوه، او لیکوالکي یې تر نوموړي نامه د مخه یوه داسې لنډه یادونه کړېده چې: د کابل مجلې اداري له ده څخه غوښتي وه چې د مذکر جمع شرح کړي.

اوس به نو وار د واره د ښاغلي بختاني لیکنه په لنډه توگه سره وکتل شي او بیا به تر یوې مختصرې مقایسې وروسته د ښاغلو لوستونکو توجه د پښتو په گرامر کې و یوه اوې مهمې کېدونکې خصوصیت ته ور اړول شي.

* * *

[د مذکر جمع] د عنوان لیدنې او بیا د لیکوالکي یادونې یې زه هېښ پېښ کښېنولم او داسې پوښتنه راته پیدا شوه چې: د کابل مجلې اداره د مذکر له جمعې سره څه مینه او علاقه لري؟ یعنې کابل خو د پښتو ټولنې یوه پښتو خپرونه ده مگر د مذکر جمع بیا په عربي کې یو عجیبه او داچسپه موضوع ده چې له پښتو سره څه دومره اړیکې نه لري.

کله چې مې د مضمون محتویات ولیدل که مې کتل چې عنوان یې یو څه وائي او مضمون یې نور څه یعنې د عربي د مذکر جمع نه وه پکښې بیان شوې بلکه د پښتو د مذکرو مفردو نومو او صفتو جمعې راوړل شوې وې، چې باید عنوان له موضوع سره د مطابقت په صورت کې داسې وای: [د مفردو مذکرو نومو او صفاتو جمعې].

۱٬۱: د [مفرد] قید مې ځکه ور باندې کښېښوویٔ چې پښتو جمع نومونه هم لري، لکه:- ولس، تال، گډه .... چې لیکوالکي په خپله لیکنه کې نه دي راوړي.

۱٬۲: دغه جمع کړه شوي نومونه او صفتونه مې د [پښتو] په ذکر سره ځکه حصر نه کړه چې لیکوالکي عربي کلمات هم جمع کړېدي.

۱٬۳: د [مذکر] قید چې لیکوالکي راوړیدی په نومو او صفاتو کې له مؤنثه څخه تمیز او بېلونه کوي.

۱٬۴: لیکوالکي د [مذکر] قید بې له مقیده څخه راوړیدی او دغه داسې اشتباه پېښوي چې نه به وايي لیکوالکي په خپله د [مذکر] کلمه جمع کوي. نو د دغې اشتباه د رفعې له پاره د مقیدو [نومو او صفتو] ذکر لازمي گڼل کېږي.

۱٬۵: د [جمع] کلمه مې په عنوان کې ځکه جمع کړه [جمعې] چې مبتداء یې جمع ده او مبتداء مې بیا ځکه جمع کړېده، چې د یوې واحدې کلمې جمع مقصد نه

بلکه په مضمونه کې ډېر کلمات جمع کېږي.

۲: داچې ددغې مقالې دليکنې غايه به څه وه، زه پوره نه يم پوهېږم او په دغه سبب سره نو مانه ځينې داسې پوښتنې را پيدا کيږي چې:-

۱: آيا د پښتو دغه برخه نيمګړې وه څرګنده بري بوهېدل او بشپړ-تيا ئي غوښته؟

۲: آيا د ننني ژبپوهنې پر اساس باندې ئي کتنه ګوري کونه او برابرونه مقصد وه؟

۳: آيا ددغې ليکنې څخه مراد داؤ چې لوستونکې دې د نومو او صفتو په جمع کولو کې له لهجوي توپيره څخه خبر سي؟

٤: آيا په دغه مضمونه کې د نومونو کلماتو د جمعې پر تاريخي سير باندې بحث مقصد ؤ؟ او که.

٥: آيا د مجلې له پاره صرف د يوه ګرامري مضمون تهيه کونګ مرادؤ؟

۱٬۲: داچې په پښتو کې د کلماتو د جمع کولو برخه نيمګړې ده که نه ده؟ خو د مجلې خپرونې ئي دغه نيمګړتيا هيڅ نه ده ور بشپړه کړې او که بشپړتيا چې ئې دراوده هغه ئې لا هم بر درولې ده. که ښاغلي لوستونکي د ښاغلي رښتين ګرامرچې د براس کال له ترمخ ئې چاپ کړېدی، دغه د جمعې برخه ئې د ښاغلي بختاني له سېړنې ليکنې سره مقايسه کړي نو به ئې د نيمګړتيا او بشپړتيا په توپير ښه تراو پوهيږي.

۲٬۲: که ووايو چې داوسنۍ ژبپوهنې له اصولو سره دې مطابق په کلماتو کې سمه ويشنه سوې وي خو هيڅ نه ليدله کيږي کمې کتنه ګورې چې جوړه سوې دي او مري به خپله ناقصې دي، مثلاً: مېږي، بختاني، کابلي... يا ستوري، غلې، سپې، کتونکی، شړاسی... داسې کلمات دي چې نه معنوي کتنه ګوري جوړه وي او نه لفظي. که چېري دغه کتنه ګورې د وروستنې ملينې [ی] پر اساس باندې وي، نو په دغه صورت کې خو د پښتو يوه او په سلسله کلمې يکښې راتلای سي او که د جمعې د [بان يا-ان] پر اساس وي خو بيا داسې نور کلمات هم ور ګډيږي چې په وروستنه کې ملينه [ي] نه لري او نه د تولو يوړنګيو کلمو [ی] ملينه ده.

يوه بله يادونه چې بايد وسي هغه داده: په ځينو کتنه ګوريو کې دونې مثالونه ور کړه سوي دي چې شمېر ئې بېخي د [ويشتو] نه رسيږي مګر په ځينو نورو کتنه ګوريو کې بيا دغه شمېر نش پر دوو يا درو مثالو باندې درول سوي دي، چې دغه پېښه په خپله د کتنه ګوريو پر ماهيت باندې د پره اغيزه لري.

دريمه يادونه ئې داده چې د مضمونه تر اصلي کتنه ګوريو ئې نوتونه او تر نوتونې فوټ نوتونه اوښتي دي يعنې تر اصلي برخو ئې مستثنا برخې ډېرې دي.

۳٬۲: کشکې خو د مفردو کلمو پر جمعو باندې داسې بحث سوی وای چې لهجوي توپيرونه ئې ښوولای او ددغه کار سره نه رسونې به يوازې د توپير ښکاره کولو په نسبت اهميت نه درلودای بلکه د هر ځای د لهجې له پاره ئې يو تاريخي ريکارډ هم جوړ اوه لکه ښاغلي روهي چې پر دغسې توپير باندې د پکتيا له دوو لهجو څخه بحث کړی دی.

ادس هم ځينې لهجوی جمعې

راوړل سوي دي مګر موږ نه دا نه راښیو چې دغه به چاپوري اړه لري او نش دوني ورسره ذکر سوي دي چې بېا کښرو محاورو کې، او یا ځینې قبایل ئې بیا داسې [۰۰] وايي .

د دغو لهجوي تو پیرو په سلسله کې داسې هم پېښېږي چې ځینې کلمې د خپل هر لهجوي شکل جمعې لري، لکه: خپور، خپاره . سپور، سپاره . پسه، پسونه ... دغه دوهمه بلا بیا پسه بله کښه کوري کې د خور، خواره . سور، سواره . پسه، پسان ... په تو که هم راوړل سوي دي .

چیري بیا داسې پېښه سوي وي چې اصلي عمومي او منلې جمعې وفرت او ت یا او نوت ته غور ځول سوي وي او پر ځای ئې محلي یا بخوانۍ جمعې را وستل سوي وي، لکه: مرغه، مرغونه . شپون، شپانه . پسه، پسان . ني، نیونه . ځي، ځي، ځیونه . چي، چیونه . شکون، شکانه ...

۵، ۳ : ... ؟؟؟

٤ : اوس به ځینې نور صرفي حالات لکه: مفرد منحرف حالت او جمع منحرف حالت وګورو . ښاغلی بختاني پدې باره کې داسې کښلي دي چې: « ځینې نومونه د تغییر کوونکو عواملو په اثر، په یاسنۍ صورت سره تغییر کوي او د همدغه جمع شکل غوره کوي د جمع په حالت کښې ئې بیا په آخره کښې [ونه] راځي .

* له « تغییر کوونکو عواملو » ځخه د لیکوونکی مقصد دغه نه دی چې عوامل تغییر کوي، بلکه له موضوع او قراینو ځخه داسې ښکاریږي چې د نومونو مطلب له « تغییروونکو عواملو » ځخه دي، چې و نورو ته تغییر ور کوي .

بل دا چې « د جمع په شکل تغییر شوي صورت » داسې اشتباه پیښوي چې: تناره، نامه، زنګانه .. کلمات جمع دي مګر مطلب داسې نه دی، ولې چې دغه کلمات مفرد دي نه جمع او د لیکوونکی مقصد په داوي چې: « مفرد د جمعې په څېر » خو داسې حکم کوونکی هم بیله څېړنې ځخه نه ښا یېږي، ولې په اسانۍ سره نه سو پوهېدلای چې مفرد به د جمعې په څېر وي او که جمع د مفرد په څېر؟ او یا خو به دواړه سره موازي وي، لکه په دغو لاندینیو مثالو کې .

الف: هغه کښه ګوري چې منحرف مفرد او جمع کښې سره یو شانې وي .

| مفرد | منحرف مفرد | جمع | منحرف جمع |
| --- | --- | --- | --- |
| خرز | خوازه | خـوازه | خوزو |
| زود | زاده | زاده | زدو |
| سپور | سپاره | سپاره | سپرو |

ب: په دغه کښه ګوري کې بیا منحرف مفرد او جمع د زر تو پیر ځله لري . « نور په ۱٤ مخ کی »

| مفرد | د جمع به شکل تغییر سوی صورت | په جمله کښې | جمع |
| --- | --- | --- | --- |
| پتلون | پتلانه | د پتلانه په جیب کې مې لاس واهه | پتلوانه |
| نوم | نامه | د خدای په « نامه » | نومونه |
| زنګون | زنګانه | تر « زنګانه » پوري عورت دي | زنګنونه... تر پایه *

ښاغلی غلام محی الدین ایوبی

# په اسلام کې د ښځو حقوق

اسلام داسې جامع آئین او کامل دین دی چې د هغه قوانین بالکل پر عدالت، مساوات او دیموکراسۍ بنا دي. موږ فعلاً صرف د اسلام د نقطهٔ نظره د ښځو پر حقوقو څه ږغېږو.

د اسلام تر ظهور د مخه په خپله په عربستان کې دا قاعده وه چې خپلې لوڼې به ئې ژوندۍ ښخولې، که څه هم لور اولاد بلل کېږي نو آیا څنګه کېدای سي چې تر هغه دې انسان تېر سي لېکن په رښتیا او تحقیق سره بدوي او وحشي عربو د ښځو څخه ډېر بد وړل، له یوې خوا ئې ژوندۍ په قبر کې اېښوولې، د بلې خوا ئې د بشري نوعې دغه د لطیف جنس ټولنه داسې استعمالوله لکه حیوانات. یعنې د حیواناتو په څېر ئې ښځې راپیولې او خرڅولې او د حیواناتو په جمله کې حساب وې.

لېکن د اسلام د عالي او مقدس اسماني دین بهترینو قوانینو د بشر د دې عاجزې او مظلومې طائفې (ښځو) حقوق وساتل او په هغه جاهل محیط او وحشي عربو کې اسلام داسې عدالت خپور کې چې ښځې او نر به یو ځای مسجد ته راتلل، د خپل خالق په حضور کې به ئې عبادت کاوه.

اسلام تر اوله بشر ته دا درس ورکې چې نر او ښځې دواړه د یو او بل ملاتړ دي یعنې د دوی ژوند سره لازم او ملزوم دي.

پخوا چې بشر پر یوه مخ د دې بېچاره ډلې حقوق غصبول اسلام داسې قوانین ورته وضع کړه چې که په هره زمانه کې هغه تطبیق سي دا ډله د ترقي و خواته بیاي، د مثال په ډول پخوا ښځو هیڅ حق نه درلود چې د پلار مېړه او یا خپلوانو تر مرګ وروسته مېراث یوسي بلکه ښځې پخپله په مېراث وړل کېدلې، لېکن د اسلام دین دې اصل ته د نفرت په سترګه وکتل او د ښځو حقوق ئې نسبت و نارینه ته نیمي و باله یعنې دوې حصې د نارینه یوه حصه د ښځې.

د اسلام دغه پورتنۍ وینا چې ښځه نیمې تر نارینه حق لري ډېر ښه عدالت دی چې زیاتره حقوق پوهان ورته تسلیم او بالکل ئې درست ګڼلی دی دلته د دې حاجت نه وینم چې پر دې نقطه باندې اضافه تشریحات ورکم.

اسلام د ازدواج په مسئله کې ښځې ته دا واك او اختیار ورکړی دی چې د واده مهر ئې هم پخپله ددې دی د بل چا اړه و غرض پکښې نسته، کونډه په اسلام کې د ځان پوره واك لري که کښېني او که مېړه کوي؛ په تجارتي مسائلو کې ښځه د خپل مال او ملك اختیار لري ...

دغه رنګه چې مېړه پر خپله ښځه حقوق لري ښځه هم پر خپل مېړه باندې حقوق لري او د دوی د واړو ترمنځ څېنې قوانین

موجود دی چې که یو پر بل باندې تېری وکړي اسلام دوا دوه جزا ایښې ده، ټول قوانین چې اسلام د نارینه وو دپاره وضع کړېدي هغه پر ښځو باندې هم تطبیق کېږي [ مګر په ځینو ځایو کې په لږ تغیر سره ] ښځه ښاوي د اسلام چې پر نارینه وو باندې د هغه اجرا کول فرض دي ښځې هم په دغه فرضیت کې شاملې دي، د علم حصول پر نر او ښځه باندې فرض دی.

دا چې نارینه په علم حاصلوي او دا ضرورت ئې ورته لیدل سوېدی نو ښځې هم په دغه ډول ضرورت ورته لري مثلاً د دې دپاره چې ښځه اولادو ته ښه تربیه او روزې او نورد کورنۍ انتظام او رسمي اداري تر عهده ښه ترا ووتلای سي که یو هغه ته لري نو څنګه به دا کار په صحیح ډول تر سره کېږي؟ د دیني علم تحصیل خو ئې لمړنی فرض دی که دا فرض پر ځای نه سي نو په دنیا او آخرت کې ئې مور او پلار او نور مشران مسئول دي.

د ښځو ډېر ښه او عالي صفات پاکي او عصمت او حیاده داسې ترښایست لا ښه زینت دی چې ښځه کمال، اخلاق، صداقت، پاکوالی، حیـا او شرافت ولـري.

# زمـــــا
# لیکنه هم ولولئ!

پالوال

د ښاغلي افق پر خبرو خو مې غوږونه نیولای سوای او څه چې ئې لیکلي وه هغه مې واوستل. سبک ئې ډېر حاکمانه ؤ، له اومړني خط په څخه پیدا د لیکنې تر آخره پوري داسې ایسېدی چې له یوې اوږدې څخه دی پر کښېنو باندې په خورا فوقیت را شروع سوی وي.

په هره توګه خوزه ئې دا لیکنې له نورو او خو سره څه اړه نه لرم مګر چېرې چې ئې په ژبپوهنه کې مداخله کړې او د [ کښې ] کلمه ئې تر ملا نیولې ده نو دغه یو څو خبري باندې ورکاږم. په تېرو ګڼو کې ښاغلي توضیالی او بیا ښاغلي هاتف پر [ کې ] [ کښې ] ، [ سول ] ، [ شول ] او نورو داسو موضوعاتو باندې لیکنې کړېدي. دوی د ښاغلي لاروي په برخلاف [ کو ] او [ سول ] پر [ کښې ] او [ شول ] باندې سم او درست بللې یا په حق ورته قایل سوېدي. تر دوی وروسته ښاغلي پانیـنو را ولاړ او عین موضوع ئې په تاریخي او د ژبپوهنې په اسنادو سره وکښله. مګر چېرې چې ښاغلي افق اشتباه کړېده هغه د پانیـنو په مضمون کې د [ کې ] او [ کښې ] په بیان نه دی؟ پر هېدلی او ښاغلي چې هغه لیکنه دی ئې سمه لوستلې نه وي. ولې چېرې چې ښاغلي پانینو د «کې» او «کښې» ترمنځ توپیر په مقایسوي، اشتقاقي او تاریخي دلایلو سره ښیي، هغوري په اومړي سر کې داسې کاږي چې که د اقتباس موضوع اهمیت ولري او څوک په درنه سترګه ورته ګوري یعني که د هغه «کې» چې د «کښـول» لـه

مصدر څخه دی او د «هغه کې» چې د «کښې» په معنا دی ترمنځ والتباس نه کونه نیول کیږي، نو د «کښې» او د «کې» ترمنځ توپیر دژبې یوه واقعي پېښه ده چې موږ ئې هرچیرې درک کولای سو او د «کښې» نه هم «ښې» دالتباس درفع له پاره وراضافه کړه سوي نه بلکه دغه توري بازوغ PHONEME د کلمې خپل اصلي جزء دی خو اوس په هغو عواملو سره چې ژبه تحول پکښې کوي له منځه تللی دی.

دغه التباس شرط معنا دا وه چې که چیري اهمیت ور کول کېږي نو دغه دلایل په هر زمان او مکان کې تر یوې اندازې پورې کفایت کوي. مګر که چیري بیا والتباس ته اهمیت نه ور کول کیږي نو په هغه صورت کې خو ضرور «کې» و منځ ته راځي چې ښاغلي بانیخو هم وار د واره اشاره ور ته کړې او خاص ئې دغه مقصد له پاره خپله لیکنه مشروطه کړېده.

ښاغلي افق پوځای داسې کاږي: «نو که پدغه (په دغو) شرایطو کې نور بر وزغیږو کوا کې داسې غږ که شاریو چې هیڅ کوچی نه کوي».

ماخو دده په لیکنه کې هیڅ شرایط ندي لیدلي او نه پوهیږم چې «دغه شرایط» و کوم شرایطو ته راجع کیږي؟ دغه د شرایطو ذکر د ده والی په صورت کې داسې مثال لري لکه په غږ که کې چې مستثنی نه وي او شریل کیږي، نو خود به هیڅ کوچی نه کوي.

بل ځای ئې بیا داسې کښلي دي: «په مترقي او ربالیستیک ادب کې باید خبرې او نوشته سره یو شانې وي او دا بیا ځکه چې ایلك دژبې عکس دی».

ښاغلي لوستونکي ئې وینې چې دوهم مفهوم ئې پر لومړي باندي بنا کړي دی او له دې څخه داسې ښکاریږي چې نوموړي و «کښې» او «کې» ته د اب له نقطه نظره ګوري نه د ژبپوهنې له پلوه، څخه چې دغه دواړه بیا په ژبه کې بېل موضوعات تشکیلوي. مګر وروستنی خبره ئې «دا بیا ځکه چې ایلك د ژبې عکس دی.» بیرته په ژبپوهنه ور ګرځیږي.

دغه خبره ماهم ښو پلا مکرره اورېدلې ده چې ایلك د ژبې عکس دی مګر ښاغلي دغه هیڅ نه ده واضح کړې چې ایلك څرنګه دژبې عکس؟ خو په دغې جملې ئې پسې متصل بیا کاږي: «اوس چې ایلك دژبې عکس سو..»

دغه جمله ډېره درنه او عمیقه ده مګر خورا سپکه او ساده استعمال سوېده. هرڅوك چې عمومي ایلك د ژبې د عکس و مرحلې ته وررسوي نو اومړی خبره ئې دسر ورپښتان ته وله پرورژبېږي او بیا به نو خپله ناکامي اعلان کې. په دنیا کې ډېر مترقي ولسونه او ډېرې رسېدلې ژبې سته، خو تراوسه پورې یو ولس هم ودې مرحلې ته نه دی رسېدلی چې ایلك دي ئې د ژبې عکس وي مګر داخو رښتیا ده چې د ځینو ژبو لیکو ډېره سوواني پېښه کړېده، دلې عکس سوي ئې نه دي. په داسې صورت کې نو د پښتو له پاره لاتیني ایلك تر عربي ایلك تر ډېرې اندازې پورې ګټور ثابتیږي.

باید څه نه څه و پوهیږو چې

«پاته په ۱۵ مخ کې»

# د بشر فکر

## پاته برخه

ربړونه وليدل او په هره پېړۍ کې دا خدائي مشل تر نور پېژندل لاندې شوی دی. که سړی د فکري مدوجزر تاریخچه مطالعه کړي نو د ډېرو زړه ویلونکو پېښو سره به مخامخ شي خو بیا به داوی چې دا قضاوت و تاریخ ته پرېښودل شي.

د مطلب څخه یو څه لیرې ولاړم زما د خبرې مخ د فکري سیر او د فکري چاروسره و. د بشر فکر د طبیعي نوامیسو سره سم اجتماعي قیدو ته له منځه یوړل او د خرافاتو توري پردې ئې څیرې کړې د غه دی چې د شلمې پېړۍ د دوهمې برخې په اوسني ایو وختو کې خپل مظاهر ښکاره کوي او انسان په خپله د خپل فکر محصول ته د حیرت او اریانتیا په سترګه ګوري. کله د مځکې پر کره په ۹٤ دقیقو کې راڅرخي او کله د سپوږمۍ سفر کوي او کله د لمر مدارته خپلې مصنوعي آلې استوي څو د فضا پټ رازونه ځانته څرګند کړي. موږ د بشري فکر د ډېر پرمختګ په سیوري کې بشېر باور لرو چې یاده پره نژدې زمانه کې به انسان د مادي هیونو ټول حقیقت راښکاره کړي او د طبیعت د پټو اسرارو څخه به مخ پورته هیسته کړي، نو څه به داوي چې موږ هم د انساني فکر و نبوغ ته تسلیم شو او بېځایه د علم له حقیقت څخه انکار ونکړو ځکه په خپله د فکر روښانه مشل د لاسه وغورځوو او نه د نورو کسانو د لاس څخه د فکر مشل په تاړاك یوسو د زماني آهنګ د اسندره نوي چې د فکر کاروان به بېړه خپل مزل او نه وهي او د حقیقت ور انګي پر تیاره نړۍ خپرې شوې دي. نو اوس بیدو انسانانو د فکر ځلا هر کلی و کړی او د هغه پیغام ومني.

غروبه غروبه څوب په څاخکي او بو دروې پارځما به سپل داوښکو بیدار نه شو

# د مذکر جمع پاته ....

| مفرد | منحرف مفرد | جمع | منحرفه جمع |
| --- | --- | --- | --- |
| ارمون | ارمانه | ارمونونه | ارمونو |
| نوم | نامه | نومونه | نومو |
| زنګون | زنګانه | زنګنونه | زنګنو |

ج: په دغه کتګوري کې منحرف مفرد کلمات په څینو نحوي حالاتو کې د جمعي کار ورکوي او اصلي صرفي جمعي نه دي.

| مفرد | منحرف مفرد | جمع | منحرفه جمعه |
| --- | --- | --- | --- |
| کابلی | کابلي | کابلیان | کابلیانو |
| دباندنی | دباندني | دباندنیان | دباندنیانو |
| صحرایی | صحرایي | صحرایان | صحرایانو |

د: کله چې د دغې کتګورۍ له منحرفو مفردو کلمو سره نر یوه زیات اعداد راورل سي نو با هغه صورت کې د «ج» د کتګورۍ خصوصیت غوره کوي.

| مفرد | منحرف مفرد | جمع | منحرفه جمعه |
| --- | --- | --- | --- |
| لاس | لاسه | لاسونه | لاسو |
| وطن | وطنه | وطنونه | وطنو |
| بار | باره | بارونه | بارو |

پورته د اصلي او منحرفو، مفردو او جمعو کلماتو مثالونه د ډېر اندي سره چې دغسې څو نوري کتګورۍ هم جوړوي.

ه: نردي ورو سته چې کمې پادرني کیبزی هغه به ښایي چې د کندهار په پښتو له مخې څخه وي، ځکه تر کمه اندازه پورې چې زه معلومات لرم *

* حافظه لرم. ما شپانه، شکانه کانزه ... په کندهارۍ پښتو کې د شپون، شکون او کوز (گفتار) د جمعو په توگه نه دي اوریدلي بلکې جمعې ئې پوازې: شپنیان، شکنیان او کیزبان ... راځي.

۶- آلو: آلو بالو، زردالو کچالو، شوتالو غوندې کلمې په کندهارۍ پښتو کې، پخپله د جمعې معنا ښندي او کله چې ئې مفرد مراد وي نو د [یو] عدد او [دانه] ورسره راوړل کیږي، لکه: د آلو دانه، د زردالو دانه ... یا یوه دانه شوتالو، یوه دانه آلوبالو... ها چې هم تراوسه پورې د ځینو اورو لهجو له بعضو کسانو څخه څه اوریدلي دي. دوی وایي چې کچالو مي رانیول، شوتالو مي وخوړل، اوداسې مي نه دي ترغوږ سوي چې کچالان مي رانیول او شوتالان مي وخوړل

۷- دمقالې په وروستۍ برخه کې د نومو د مفرد او جمع ښوونه د دا بلوک په ډول شروع کیږي چې پر دغې ښوونې باندې سربېره ځینې د پښتو نور اوانۍ غړي او ځینې نور کسان د دوی د ترمنـو یا

نخاصو د مفرد او جمعې په ضمن کې هم معرفي سو بدي.

# زما لیک هم ....

اوس پرې - لیک چیرې د ژبې عکس شمېرل کېدلای سی او بیا که لیک د ژبې عکس سی نو آیا خواري او مشکلات پېښوي که سوواني ؟

۱:- لیک یوازې د ژبې د پوهاوو ترمنځ تنها د دوی په خاصو ژبنیو لیکنو کې د ژبې عکس کېدلای سي چې هغه هم پېله دوی څخه نور څوک نه په پوهیږي او که ښاغلی افق مراجعه ورته و کي نو به د ډېرو کلماتو په لیکنه کې ملک یک یا ته سي او به هنداره کې بۀ: نسبت و او سمیولیکنو ته ئې، تردوو پزو لاهم ډېرې ورپښې. څرنگه چې زموږ په مطبوعاتو کې د دغو ژبنیو لیکنو له پاره هیڅ نورې او نخښې نسته، ځکه ئې نو زه هم کم مثال نسم درکولای.

۲:- کله چې لیک د ژبې عکس سي نو باید دغه خبره داسې و نه گڼل سي چې سوواني پېښوي بلکه خورا ډېر مشکلات را ورانديٰ کوي. دا ځکه چې

یوه ژبنۍ اجتماع سربېره پر لهجوی مختلفو وېشنو باندې نور ډېر مختلف طبقات لري بعضې د بزگرو ژبه د کاربگرو له ژبې سره توپیر لري او د دوی هغې بیا د دکانداراتو له ژبې سره فرق لري او هم دغه رنگه د بېکارو، مامورینو، تجارو... دغه شانې هم د ښځمنو، ناریناوو اوبانو، کوچنیانو او نورو ترمنځ خوراډېر ژبنی توپیرونه سته.

سربېره پر دغو طبقاتي توپیرو باندې، د هرې طبقې په افرادو کې ډېر ژبنی فردي خصوصیات توپیر سره لري او د ژبپوهنې لیك هم خاص ددې له پاره استعمالیږي چې لهجوي، طبقوي او فردي ټوله توپیرونه په ثبت کې او بیا له دغو څخه هغه خصوصیات را وباسي چې د دوی د ډېرو ترمنځ سره مشترك وي او .....

ښه نو! که چیرې لیک د ژبې عکس سي، په هغه صورت کې به خلك بو د بل په لیکنو نه سره پوهیږي یا مگر د جامعې افرادو نور کارونه پرېږ ایښي او له یوه مخه ټوله ژبپوهان وي. *

* ښاغلی افق یو بل ځای داسی کښلی دی چی: «تاسی غوږ ونیسیء چی کوزه وواېم ما په هنداره کی وکتل دوي بزی راښکاره سوي او بهحتماً را باندی وخاندیء او که مو ونه خندل نو وبوهیږیء چی د [کښی] کلمه تر [کی] درسته ده» .

ما خو بخپله د خندا پر ځای باندی افسوس وکړ او داځکه چی دغه مثال چی په هنداره کی دوي بزی ښکاریږی، لهغی پیښی سره چی د [کی] په منځ کی [ښ] راځی، هیڅ سر نهخوری او که ئي دغه مثال پر ځای باندی یو بل داسی مثال راوړی وای چی څه ورسره لګېدای نو بهښه وای ولی چی په [کښی] کی خو هیڅ توری یا ږوغی شکل غبرګ یا جوړه یا دوه وار نه دی راغلی مګر ښاغلی افق په هنداره کی دوي، غبرګی یا دجوړه بزی لیدنګ فرضوی . که د دغو پر ځای باندی په هنداره کی خرېیلی پرېتونه بیرته د خولي او بزی ترمنځ ناخرېیلی لیدلی وای، او بیو ښه مثال راتلای سوای، ولی چی بزه به د [کښي] د [ك] په مقابل کی وای

خرېیلی پرېتونه به د او پېدلی [ښ] چی بیرته راپیداسویدی په مقابل کی وای او خوله به د [ی] برابری وای .

سرېیره پردي چی څوك په هنداره کی فرضاً د یوي بزی پر ځای دوي بزي وبنی او یا خرېیلی پرېتونه بیرته راشنهسوی وبنی داسی هم پیښیږی چی خپله بزه دی اوږده یا لنډه یا پیقه یا کبزه وبنی . د دغسی پیښی یو باریك مثال چی د ژبپوهانو ترمنځ تداول اری او یوازی ئي هغه لیك نبتوی چی کېدلای سی د ژبیعکس دی ورته وویل سی خوزه ئي دلي یوه نښه یادونه کوم :-

هغه [خ] زغ چی د [خور] په کلمه کی ئي وایو یو داسی زږغ PHONEME دی چی لهغی [خ] سره چی د خپټه په کلمه کی ده د زغپوهنی له مخی څخه ښکاره او د پژنو پېر اری، چی لومړنی ئي دوبنګ له مخی څخه [بیرنني] او وروستنی ئي [دمخني] [خ] ده . چیری چی لیك د ژبی عکسی نو دغه راز او پانردي لوی لوی نو پیروته خورا ډېر

مشکلات پېښوی . مثلاً ومانه تراوسه پوری هیڅ دعبدالرازق په نامه صحیح خطاب نهدی کړی او نهئي دغه نوم درست ادا کړ بدی بلکه «ابدولرازېك» یا «اودلرازېك» یا خو «دادرازېك» راته ویل سوی دی، دغه رنګه په ګرده افغانستان کی هیڅ یو داسی افغان نهسته چی دستانوم دی «محمدطاهر» په غیرشعوری ډول سره درست تلفظ کی بلکه پر ځای باندی ئي «مامدزاېر» او که ئي پیخی عامیانه ونه وایی نو به ئي «مهمدزاهر» اداء کی . که واقعاً ښاغلی افق یو په مترقی او رېالیستیك ادب پسي ګرځېدی لیك ئي د ژبیعکس بهاله او بیانئي داسی خبره هم کوله چی: «تو ووایاست چی موجوده واس څه وکیء اوس نو ښاغلو اوستونکو! تاسی غور او قضاوت وکیء چی د ده د پورتنیو خبرو په نتیجه کی باید د افق کلمه څرنګه وایکل سی؟

آیا په پښتو کی د «ف» او «ق» زوغونه یا فونیمونه سته؟ او پښتانه دغه نوم څرنګه وایی؟ یاد ده یا قول: «اوس چه لیك

# د کندهار وړوکی شاعر او لیکونکی

نوم ورکي شاعران

ښاغلی نجیب



دا عکس د یوه وړوکي شاعر او لیکونکي دی چې پر دوو لس
کلنۍ توب باندې د نوي سپېڅل شوي غوټۍ په څېر سره
مړ کړ ظالم نامراده کړ. پرته له شاعرۍ څخه ئې د فطري
استعداد او خدای ورکړي ذهانت په اثر سره د ژوند
په ډېر لنډه موده کې تر اوو مه صنفه پورې تحصیل رسولی
او هر کال به اول نمبر کېدی. د هغه وخت نائب الحکومه
سردار علی شاه خان به په هر مجلس کې دده د ښه استعداد
ستاینه کوله او له خوندورو منظومو څخه به ئې خوند
اخیستی د کابل مجلې د ۱۳۲۰ کال په د ... ګڼه کې
ئې دغه عکس خپور شوی او پر فطري استعداد باندې ئې د
ښاغلي جلالي له طرفه څخه لیکنه هم شوې ده.

د وړوکي شاعر د شعر نمونه.

## څوک

د هغه چا به وي څرنګه نېکخواه څوک — چه په ظلم سره اخلي مال له چا څوک
چه ئې سوی وي غلې کړي به خوله درست وي — د دار ننګ سري دي نه کیږي آشنا څوک

* د ژبې عکس سونو د «او بوک» کلمه په پېښې د پر و بنبتنو کې رواج ده او پلافق ئې نه وایي... او چه په ژبه ئې اوبوک وایي لازمه ده چې نوشته ئې هم اوبوک راسي ځکه چې ایك د ژبې عکس دی.

په وروستنه کې پر ښاغلي باندېنو باندې هم پر قطعي انتقاد نیسم او هغه دادی چې د کندهار په سبزي نیرانمه ګڼه کې ئې د خپلې کره کتنې پلدر بم شمېره کې کورټ اشتباه کړېده او دده دغې اشتباه د څرګندولو او اصلاح له پاره به ژه وروستنه په یوه مناسبه موقع کې اقدام وکم. «دغونه»

چه پخپله وی جاهل بل نه لار ښیی
خدا به مه کړی د چادار نګ رهنما څوک

لاس نیما کی سترباښه ده تر احتیاجه
خدای دی نه کاندی د بل پردر ګدا څوک

د بې علمو الدنګانو مل څوک مه شه
له ملتوب ښخه بې زده کړی ناروا څوک

د نوموړی وروکی شاعر پر مرګ باندی ښاغلی عبدالحمیدخان «نحیف» د هغه وخت رئیس ارکان. ښاغلی شیرګل «کامه‌وی». ښاغلی عبدالرؤف «مخلص» او ښاغلی عبدالشکور «رشاد» غرا مرثیې ویلی او خپل تأثرات ئې څرګند کړی دی چه زه صرف د ښاغلی رشاد دمشر ورور مرثیه ئې د ښاغلی محمدحلیم سلیمی د [زموږ لیکنی] له چاپی کتابه څخه رانقلوم:-

ما به یودم له ځانه نه بېلولای ودوده ګله!
که زه پخواد تا له مرګه خبر یدلای ودوده ګله

که زه خبروای چه دی مرګ ترما دوه‌بی دی
د زړه ملهمه
چه د ژوند مزی دی دا هسی څېرازی دی
د زړه ملهمه
ما به نهال د تا په او ښکواو بولای ودوده ګله

که زه خبر وای چه دا هسی نامرادیږی
پر نوی ځوانی
الکی هسکی ګل به مرګی نیمه‌خوا کیږی
پر نوی ځوانی
ما به دی هر قدم پر سترګو ایښولای ودوده ګله

که زه خبروای چه دا هسی ژر بېلتون دی
دسترګو نوره
یووارس کاله به دنیا کښی ستا ژوندون دی
دسترګو نوره
ما به د نغه‌یه کوګل کی نه‌سانلای ودوده ګله

که زه خبر وای چه نه بیا نه راجوړیږی
له دغه رنځه
نه د مرګی د لوی لاری پردیسیږی
له دغه رنځه
ما به بهار او ماښام پښی در مچولای ودوده ګله

که زه خبروای چه‌ابز اوسي به‌ترپه کښی
د زړه تکره
ما به نه‌نجتې الکه ګل وای به‌بګړی کښی
د زړه تکره
ما به پانوغوندی پرسترګو کښېنولای ودوده ګله

که زه خبر وای چه داهسی ژر خزان دی
زما نفسه
له‌دې وصال سره محبت غم د هجران دی
زما نفسه
زه به بوراغوندی پرتاګل ګرځېدلای ودوده ګله

که څه خبر وای زه «رشاد» چه نه پاتیږی
نه‌ځې راڅخه
ارمان زده الله دي نا سوځنه روانیږی
لیږدی راڅخه
ما به‌دی لاره په پانوچارو کولای ودوده ګله

# عبدالحکیم «شیدا»

لـ

[ویران]

لکه یو ماهر زرګر چې د ذوق سره هم ښه نفیس د غاړې امېل ښایسته پنګړی، اعلی د غوږ والی او نوره ګېڼه په زړه پورې جوړولای شي، همداسې زموږ نازک خیاله شاعر عبدالحکیم «شیدا» د خلکو په فرمایش داسې رنګین غزلیات جوړ کړي او زموږ د خوښۍ په مجالسو کې د مېړ منو او نجونو له خوا ویل کېږي. دا د فرمایش ترتیب دلته یوازې د ښاغلي «شیدا» په اشعارو کې لیدل کېږي، که څېری موږ نه یو داسې غزل دده په اثارو کې په مخه راسي چې ددوی د حاله سره ئې تطابق ونه وینو نو باید یوه سو چې هغه ددغه دول څخه وي کوم چې دیوچا په غوښتنه شاعر ورجوړه کړي وي.



د شعر او ادب نورې برخې ئې چې په څېنو کې ئې اجتماعي بدو دیو غندلی یا قام ته د سمې لارې ترغیب وي، په څېنو کې ئې د پښتنو والي افتخارات او ممیزات ستایلي، څېنې ئې بیا یوازې د دوی د حاله څخه حکایات او ډېره برخه ئې غزلیات دي چې موږ په جرائدو کې لوستلي یا مو دده د شاګردانو څخه راډیو او رېدلي دي.

د ښاغلي شیدا اشعار او اثار ټول منظوم دي او چې زړه ئې غوښتي دي کله کله ئې نثر هم لیکلي دي هغه غزل چې مطلع ئې داده:-

واسته زرین خال او نه په لمن کې که راتوی
شهبازدې پر مخ وار د و زلفانې که خوشبوی

ځلمیان او د نفیس ذرق څښتنان ئې خورا خوښوي، کله ئې بیا هغه برخه ستایل کېږي چې څه نو کې هم په ګډه ری لګه دا:-

مخ سپېره په تور و خاور و لګ منه
نشوې موږ او نه دې ورکه سواه او ږه
یو تش پړ یول په امېور ته ورڅه یو لېږي
د غران پر غرخ دې وزي تر خوله کرږه

څوک ئې د اشعارو نورې برخې یادوي او دهغه په ورجه د نو موړي شاعر درجې ټاکي خو دا ټول ډراو نه ئې په ولس کې خپاره او محافل ته نا وده دي یا په قطعي صورت په وو ایو چې ښاغلي شیدا د هر ذوق سره برابر اشعار او ادبیات لري او د ویلو وړ دي،

«شیدا» څوک دی؟:-

ښاغلی عبدالحکیم شیدا د مرحوم غلام محمد زوی د مرحوم میا فتح محمد کاکړ لمسی، په کندهار کې زوکړی او اوس هلته اوسېږي. د [۷] کلنۍ څخه د عمر تر ۱٦ کالو پورې ئې په خصوصي توګه ددې ځای د مروج علومو تحصیلات کړي دي، وروسته ئې د ژوندانه ارتیاو د رفع لپاره وځو کارو ته لاس پورې کړ یـدی. دا مشغولیتونه چې دده د کسب او

کار دوري تشکیلوی؛ بزازی؛ عطاری کله بیا په مخینو موسسانو کې د لیکوالی په حیث ددوی د تقرر څخه عبارت دی.

او س چې سن ئې تر ۵۰ کالو بالا دی د ژوندانه مشکلاتو ډېر ستړی کړي دی چې دا خبره زموږ و ادبي نړۍ ته د خواشینۍ موجب ده.

ددې خبرې په اعتماد چې وائي: د ښو اخلاقو او ښه طبیعت خښتن د ډېرو دوستانو درلودونکی وي؛ همداسې زموږ دا شاعر په خلکو کې ښه نوم او احترام لري دا ځکه چې ښه اخلاق هم په ده کې دي د ښه طبیعت او وربن تندی خښتن هم دی.

دا چې د ډېر وخت راهیسې موږ دده یو نوی شعر نه دی لیدلی وجه ئې دا ده چې په یوه اوږده ناروغی دچار او اوس هم د ژوند د سرګردانیو سره داسې مخامخ دی چې ورته ئې هیڅ فرصت نه میسر کېږي، ددوی اشعار په جرائدو کې په زیاته بیا په طلوع افغان کې خورا ډېر موندل کېږي، دا څو پارچې ئې د نمونې په توګه د مجلې و ښاغلو لوستونکو ته وړاندې کوو:-

## دا مستي ده؟

دا مستي ده که بیا نوی لېونتوب دی
دا نشه ده د شرابو که سر کوب دی

دا د شونډو د شربتو مدهوشي ده
که ژوندی مې بیده د مرګ په خوب دی

دا فرنګ دی د طاعون سره ګډ سوی
که ئې ډک جام را څکلی د میکروب دی

دا سې بې کاغذ مه بولې عالمه!
د شیدا عبدالحکیم د زړه زهوب دی

## د مینې اور

جنون مې د دنیا و کار و بار ته نه پرېږدي
بلبل مې و چمن او لاله زار ته نه پرېږدي

افسوس دی زما پر ژوندوی چه په ځلو ګه نه پرېږي
لټی مې و قرار او و فرار ته نه پرېږدي

وحشت مې هسې ډېر سو چه ئې عقل کړ را محوه
افلاس مې د ښېګڼې و بازار ته نه پرېږدي

حواس مې مضمحل سوه په لیدو د بد اشکالو
لکنت د کدورت مې و ګفتار ته نه پرېږدي

همچون د همدردي مرض د زړه را بو په دوه کې
علت د بیمارۍ مې و معیار ته نه پرېږدي

پټ ئې غوندې سټې شوم په لمبو د فراقت کښې
اغیار مې خپل د مینې و انګار ته نه پرېږدي

د شیدا، یم خوله مې پټه ده هیڅ حال نشم ویلای
حاسد د مقاصدو مې اظهار ته نه پرېږدي

## څه شی ښه ده؟

د بې عقلو تر یاری جدائي ښه ده
د ممسك تر محتاجي ګدائي ښه ده

د بې قدرو په مجلس کې چه ګډون کړم
تر داسې اختلاط تنهائي ښه ده

په ظاهره وی صفا باطن ئې تور وي
مخ دی واروری د باطن صفائي ښه ده

په درې ورځې هیڅ سړی نه معلومیږي
پسله ډېرو تجربو آشنائي ښه ده

ښاغلی محمد علم [بخرکی]

# د تاریخي واقعاتو معاشي اسباب

د انسان ویره او امید، فرض او امکان او د قول عمل تو له تړلي دي د هغه نظام سره چي موږ ورته د پیدا ښت یا محصول نظام وایو جغرافیائي تقسیمونه او تاریخي واقعات ټوله په معاشي نظامو پوري اړه لري، د انساني ژوندون او یه حصه تعلق لري په معاشیاتو پوري. د غه ټکه د زماني خیال او فلسفه د هغه وخت د معاشیاتـو نتیجه ده.

که موږ د تاریخ د دورو ارتقائي نظر یو څخه صرف نظر وکړو بیا هـم دې څخه سترګې نه شوای پټولای چي د ارتقا او د عوامـل، د پیدا ښت اسباب، د کار تقسیم او تبادلـه ده. دغه اسباب د انسانـانـو افکار ارادې، او خواهشات جوړوي. د پیدا ښت یا محصول په تنظیم سره انسانان پـوله بله سره کډیږي، په دوي کي مجلسي سیاسي، اخلاقي او تمدني روابط ترتیب کیږي. نو بدي تو که که موږ غواړو چي د یوه خاص مملکت سیاسي، اخـلاقي او مدني وضعیت معلوم کړو، او تر

تولو اومري زموږ نظر و تنظیم ته د محصولاتو وراوړي د پیدا ښت په دغه تقسیم سره اجتماع په ټولو یووېشل کیږي. انسان نشوای کولای چي د خپلو خواهشاتو مطابق خپل نظریـات واړوي، بلکه ددې نظریات د ذرائع پیدا ښت پـه وجه تغیر پیدا کوي هیراپلاسکی پدې باره کي لیکي:-

چي حقوق، عدل، آزادي او مساوات ټـوله د پیدا ښت په ذرائعو پوري اړه لري، په یوه نظام کي د پیدا ښت سري فقط ددې آرزو او مطالبه لري، چي ماته دې برسرک د ننګ اجازه

راکړه سي. مګر کوم وخت چي دا نظام بـدل سي، نو دغه انسان دعوه کوي چي حقوقي قانون باید جـوړ سي، په یوه وخت کي انسان په ټوله کال کي فقط لس ورځي رخصتي ځان ته غواړي. خو کوم وخت چي نظام د پیدا ښت تغیر پیدا کي هغه انسان مطالبه کوي چي مزدوران باید روزانه اته ساعت کار وکي.

د قدیم مصر غلامان چي د اهرام په جوړولو کي به شپه او ورځ بوخت وه. ولي تې داسي مطالبې نشوای وړاندې کولای لکه نن ورځ چي ئې د انګلستان

---

چټل کاره پښېمني که څه د ښار وي | چه د بل دنیا په لاس وي ورغلي
تر دې خره پښتنه صحرائي ښه ده | زمانه زړ د دوو ننګو داراني ښه ده

روند حریص چاوظیفه ئې سلاپوروي | بر هر غوږ مه سه شیدا عبدالحکیمه!
تر ده زر ځله د شل پیغاني ښه ده | پر محبوب حقیقي شیدائي ښه ده

مزدوران وراندئ کوي.

ايشائي مزدوران د اروپائي او امريکائي مزدورانو په شان راسي خپلي مطالبي نسواى وراندئ کولاى.

ښکاره خبره ده چي په مختلفو پيدائشي نظامو کي د حقوقو مطالبات هم مختلف وي، د شوروي اتحاد د مزدورانو مطالبي پاغو ښتني د نورو ممالکو د مزدورانو څخه بايد توپير ولري کله انسان فقط په بازار کي د اخر په نرخ پيدو اکتفا کوي، خو کوم وخت چي د نظام پيدائشي دول تغير پيدا کي هغه وخت د تحرير او تقرير کولو مطالبه وراندئ کوي.

په يوه نظام کي فقط د ورونو و حق ته مساوات ويل کيږي، خو چي نظام د پيدائش واوړي هغه وخت د معاشي مساواتو مطالبه کيږي.

فيورباخ وايي: چي د انسان وجود د انساني شعور او احساس راويښوي. ليکن مارکس معتقد دى چي انساني شعور د طبيعي ماحول څخه پيدا کيږي او اجتماعي ماحول د ذهني ارتقاء څخه په وجود راځي يعني انساني شعور د موجوده هغه ماحول پيداښت دى، چي په کوم کي هغه خپله گذاره او معاش پيدا کوي.

داښکاره خبره ده چي په مختلفو زمانو کي د معاش پيدا کولو طريقې مختلفي وي، دغه وجه ده چي په مختلفو زمانو کي د انسان خيالات او نصب العين هم تغير او تبديل پيدا کړيدى د خيالانو دغه تبديل پر اخلاقو خپل تاثير اچوي ځکه نو عملي اخلاق په مجلسي ماحول کي تغير پيدا کوي؛ گويا په مختصر صورت سره موږ داسي ويلاى شو چي د ژوندون بنيادي اصول، راستبازي او نيکي نه ده، بلکه محض تبديلي ده. که پدي نظر به باندي د تاريخ مطالعه وشي، نو به معلوم شي چي د انسان په طبيعت کي تغير پيدا کيدونکي قوت موجود دى. جمود هيڅکله ژوندي انسان نه خوښوي نو کوم وخت چي د انسان مجلسي حالات بدليږي طبيعي امر دى چي فطرت د انسان هم ورسره اليش کيږي ځکه چي بدلون د اجتماع طبيعي خاصه ده. پدي قانون اخلاقي قوانين هيڅکله جامد او بې نظيره نسواى پاته کيداى او پر دې اساس باندي کوم وخت چي اخلاقي قوانين د کومي اجتماع په گټه جوړيږي هغه د گرد عمر د پاره مفيد نسواى کيدلاى. د تاريخ د مادي نظريې په شان کارل مارکس پر اخلاقو خاصه بېله نظريه قايمه کړيده ځکه چي پر علم پوره عبور نه لري، گمان کوي، چي مارکس د اخلاقو هيڅ وجود نه قائل دى؛ حالانکه کارل مارکس دا موضوع د اخلاقو د مابعد الطبيعيانو څخه جلا کړيده.

مارکسيست د اخلاقو مقصد د بشر مفاد گڼي، دا رنگه اخلاق چي فقط د يوې مخصوصي طبقې حقوق ساتي، هغه د انسانيت د پاره مضر گڼي.

دغه سبب دى، چي کارل مارکس داسي قوانين د اخلاقو نه مني چي هغه ثابت او د ټولو د پاره يو شان ته فائده ولري، دا قسم اخلاقي قوانين چي د يوې او يا څو ډلو حقوق په نظر کي نيول سوي وي، هغه کارل مارکس نه مني او د اجتماع نه د هغه د ورکيدو هدايت ور کوي. مارکسيست هغه کوي چي

داسې قوانین وضع کې چې د
ټوله بشریت ته یو دول ګټه
ورسوي. کارل مارکس د ژوندو
اخلاقو ځکه مخالف وو چې ده
هغه قوانین د ټولو دلو د یاره
یو شان ته مفید نه بالل.

ځینې کسان فکر کوي چې
مارکس قطعاً د اخلاقیاتو قائل
ندی. حالانکه دی د عمومي
اخلاقو د قوانینو جوړونکی
دی. د داسې اخلاقو چې د هغه
حفاظت د بشریت پر ټولو طبقو
لازم دی. [پای]

ښاغلی ورور کرزي صاحب!
د «تاریخ څه شی دی؟» تر عنوان
لاندې کوم سلسله مضامین چې
زما د کندهار په مجله کې نشر
سوه دادي پر ۱۱۲ صفحه پای
ته ورسیده.

مګر د نشر یدو په حصه کې چې
ښي لوی اشتباه سویده هغه دا ده
چې دا مضامین د ابتداء څخه
بیا تر آخره پوري زما خپل اثر
ندي بلکه د خارجي منابعو څخه
ترجمه ده. حالانکه په دمخنیو
مجلو کې زما د نامه سره د
ترجمې نوم ندی ورسره لیکل
سوی، ځکه نو هیله کوم چې په
آخره کې د یوه نوټ په صورت
ورسره نشر سي چې دا نوشته
ټوله ترجمه وه. په درناوي




د اګري سپین تاج محله — د هنر ښکلي ممیلهٔ
مهارت د معمارۍ ئې — یو تمثال د ښکارۍ ئې
ښکلي بیغله د تعمیر ئې — په جهان کې بې نظیر ئې
هر یو ځای دی تماشه دی — هند په تا د پر ښایسته دی
دا چې ته باندې بنا ئې — تر هغې خو د پر بالا ئې

د ایشیا سپینه تجلي ئې
ښایسته ئې ګلالۍ ئې

د شاهي مینې مظهره — د عیسی «۱» د لاس ثمره
نتیجه د یو اوي غم ئې — موجود کړی یو ماتم ئې
پر پاچا چې عاشوره سوه — جوړه ستا ښه منظره سوه
د ممتاز نیو د سر تاجه — غمزده زړه ته علاجه
شاهجهان د عشق معیار ئې — دا چې ته ستر یادګار ئې

د ښکلا ؤ مجموعه ئې
د ګلانو ښه دسته ئې

د جمنا د رود پر غاړه — په اوښو ده ستا ولاړه
جمنا مار دی کوږ وږ تللی — ئې غمې تر خوله لویدلی

«۱» عیسی افندي هغه نامتو مهندس دی چې تاج محل د ده په نخشه جوړ سو.

چې په هند کې امر حضور وی ... دو دا انګو ئې پر تا شور وی
او چې هم د بدر شپه وی ... ستا عجيبه تماشه وی
عاشقان پر تا تو ليږی ... په سپوږمۍ کې در بهيږی

دوی سپوږمۍ ته سره ګوری
هغه محوه ستا پر لوری

دا نسان ستر ګی سوی سپينی ... کې تر ستر ګو راسی وينی
چې فقط ستا مثال غواړی ... جوړه ستا د جمال غواړی
دا تلاښ ئې هسدر تللی ... تول کوښښ ئې دی با بللی
ورك سوه دېر يادګارونه ... د انسان د لاس کارونه
حوادثو چې وران نکړي ... او پايمال ه دوران نکړي

يو سبب دی ښکينی ده
بل سبب دی رنګينی ده

ښکارونه ، جمالونه ... دلبران و ښه مخونه
د جهانه څخه ولاړه ... ليکن ته به هسکه ولاړه
د ژوندون بو ادامه ئې ... که څه هم يو هديره ئې
د قرنو استقامت ستا ... چې وجود دی سلامت ستا
د بوخ والی بر کت دی ... انسانانو ته عبرت دی

هر بوخ کار نه خرابيږی
دا لتا څخه معلوميږی

نه چې تنها شاعران ستائی ... تول بشر دی صفت وائی
بوي ښځی په بيان کی ... دا ويلی ستا په شان کی
که بر ما چيری بنا سی ... او بنا داسی ښکلا سی
زه به ځان مړه کم بخپله ... چې پيدا سی يوه بله
دا بدي چې هم زيبائي ... رنګينه ئې او صفا ئې

داجهان به دېر خراب وی
ستا به دغه آب و تاب وی

د کل شی الدنيا له عربی
مجلې څخه دسږبن ترجمه

# تر جمال او حسن

## پورې ئې د طاوس

### ستر تخت هيڅ وباله

داخو وهرچاته معلومه ده چې په ظلم او بې رحمی کې بيله چنګيز، تيمور او هلاکو څخه نادر افشار زيات شهرت اری وائی: کله چې ئې پر هند برغل وکړ او په ۱۷۳۹ کال کې ئې د ډيلی ښکلی ښار د ولجو په غرض سره لوټ کړ نو د نورو غنايمو په ترڅ کې ئې د طاوس مشهوره تخت هم اصفهان ته يوړ د دې تخت پايې د هند له قيمتی جواهرو او مشهورو الماسو څخه جوړی شوی وې نور ځايونه ئې ګرده نګين نيباله اوپا د سرو زرو په نقش سره او نګار سره ښکلی وه .

د هند ګرده خلک له يوې خوا څخه په لوتيدلو او له بلې خوا څخه د تيموري تخت په وړلو سره زښت ډېر خواشينی وه په کوڅو، بازارو حتی معبدو کې به ئې ناري وهلې چې:*

*[ نادر دی د طاوس تخت راکړی موږ ته کړدو شیانو تېر یو] ددوی دې ښوا خطارو پر هغه زړه سختې باندی کوم اثر نه کاوه او بېله مقاومت څخه ئې داخیستو هیڅ امکان نه ؤ نو او د افسوس پرته او ښکی تو یولې خو د عمل وده کړته غیر له یوې ښکلې پېړمخی پېغلې څخه په پېکرده ملك کې څوك حاضر نشو اودا سو په هغه چاتر سره کړه چې هیڅ امید نه ورته کېدی .

امینه د بخوانی مغلی پاچالوروه چې داکا لهزو په سره اصفهان ته د پلار د کسات اخیستو اود طاوس د تخت د قیمتی جواهراتو راوړلو په غرض سره ولاړه هلته ئې د [ اسواق الرقیق ] د مینځیانو او مریانو په صف کې ودرانیوه نکونه د ځان د خرڅلاو وضعیت ښکاره کاوه د جمعیت هر سړی ئې دږر رانیولو تلاښ در اودې خو دا کا زوی پهٔ ئې په جواب کې و یله: تاسې خوشې د کې مه وهی ، ما دا مینځه د تولواك په نیت سره له هنده څخه راوستلی ده نه ئې پر بل چا خرڅومه او نه دی اضافه تردې څوك درانیولو اصرار کوی .

پسله څو ورځو څخه ددې کیفیت اوازه د پاچا و دربار ته ور سېده او یو درباری ترنوروو درباریانو د مخه و اسواق الرقیق یعنی د مریانو او مینځیانو د خرڅولو و ځای ته ځان راورساوه او کرار ئې د هغه ذکر سوی بایع په غوږ کې وویله: ځوانه پردې ښکلې پېغلې باندې دې څو بیه ایښې ده ؟

ځوان: زه ئې په پیسو نه خرڅومه وکړان تولواك ته ئې د هغو نیکیو په بدله کې چې ده زموږ له خاندانه سره کړي دي بخښمه پاك خدای دی و کړی چې بخپل کرم سره می دانا چیزه هدیه قبوله او د حرم د چارو کنیزانو افتخار ور و بخښی که څه هم دا چې تاسو ئې مینځه بولی زما د زړه توته او ګرانه اورده مګر زه ئې ترخپل محترم قایده پوری چې د وېنې او ذات شراکت ورسره لرمه هیڅ نه ګڼمه فقط دده و دیدار او ددې امانت ور تسلیمولو ته راغلی یم نو که ستا په وساطت سره می دا مقصد تر سره شی تر ابدالابده پوری به ستا د احسان ممنون یم.

وائی: هغه درباری تر نورو درباریانو د مخه د خپل عزت او قرب د زیاتوالی په ملحوظ دا خبر ژر تر پاچا پوری ورساوه او د زیاتی توصیف او تعریف کولو په اثر سره ئې د هغه زړه بېتابه کړ دستی له اوږ حضوره څخه امر وشو چې نجلی دې مستوره ترحرم پوری ورسول شی او پلار دی را حاضر کړه شی چې زه پسله تشکر څخه د زحمتو او تکلیفو ګالو په بدله کې څه ور کړم دربار لا نه ؤ ختم شوی او شاه لاحرم ته نه ؤ ستون شوی چې دا امر پر ځای شو. مطلب دادی چې په حرم کې د ننه امینی له یوه طرف څخه د خپل حسن و ملاحت او له بله طرفه څخه د ښه اخلاق او ښه سلوك په سبب سره د پاچا زړه لاس ته راوستی او د تول شاهی حرم مشره شوه د جواهراتو د صندوقانو او د خزانو د کلیو اختیار و دې ته ورکړه شو هر څه چې به ئې کول او هر امر چې به ئې کاوه ژر به پر ځای راوړه کېدی چا ئې نشوای پکښې ویلای .

په تو له ښار کې ئې د ملکه کېدو تینګه اوازه د مخه تر نکاح

تړلو لاخپره شوی وه او شیخ-الشیوخ قاضی [والدانی] یوه شوی ؤ چی شاه د امینې د ښکلا او حسن په دام کی داسی ګیر شوی دی چی نه ئې یوازی د ملکه توب عزت ور بخښلی دی حتی د ټوله فارس حاکمه کړی ئې ده .

رښتیا هم ددې هر امر نافذ او د سپینی مانی د ګردو قیمتی جواهراتو ساتونکی وه د شاه ستړیا به ددې په خوږو نغمو او شیرینو خبرو سره لیری کیدله مګر سره له هومره ګرانښتهٔ د طاوس د تخت په لیدنه سره نه وه بریالی شوی او هغه ارمان ئې نهؤ تر سره شوی چی دی له هندوستانه شخه له ځانه سرهٔ راوړی ؤ. د خدای کړه وه پسله ډېری مودې شخه ئې یو مورخ د تومودی تخت د زیارت کولو خواهش بداسی حال کی ومنل شو چی نادر دا د خپل محبت په بغل کی نیولی او حسن و جمال نه ئې مبهوت نللی ؤ ددې عشق او محبت د امینې په اثر سره ئې د طاوس د تخت ګرانښت پر مخ هرشو او سمدستی د هغه تخت و خونی ته ور سره ولاړ، پسله توضیحاتو شخه ئې د ټوکو په ډول سره ورته وویله: ګرانی امینې دا تخت ښکلی دی که نه؟

څو ورځی پس د فارس په یوه ولایت کی ابنږ شخه بدامنی پیښه شوه او شاه هغه ځـای ته د ارامولو په غرض سره د تګ نیت وکړ امینې پـه یـه نصفی ژړا سره دی له تګ شخه منع کاوه او غوښته ئې چی پـه دې صورت سره خپله وفاداری وده نه په اثبات ورسوی او به یوه چم سره د چمو د هغه تخت د خونی کلی ځنی لاس ته کړی ساده نادر چی غیر له وفا تو بولو او چور وچپاو شخه بـه بل شی کی ماهر نهؤ دی مکر وچل ژر وغولاوه او د ټولو ما او اسبابو کلی ئې ورته تسلیم کړی سمدستی د مقـصد و لور ته روان شو .

پدې وخت کی امینې په خورا بیغمی سره د تومودی تخت ګرده جواهرات او الماسونه د خپل اکا د زوی په لاس سره وهند ته ولیږل او کوم د نیې شی ئې بر یري نه پـوی څو ورځی پس ئې یو ښکلی زوی او د ایران د تخت وارث پیدا شو چی په شکرانه کی ئې خورا ډیـر خیراتونه وشوه بل د نـادر خوشالی د زوی په زیږیدو او د فتح په حاصلیدلو سره دوچنده شوه ژر و اصفهان ته ستون شو او څو ورځی ئې د خـوښی مسلسل جشنونه برپا په کړه، له هری خوا شخه د مبارکی پیغامونه ورتـه راغله .

پدی مابین کی شپې ډېری ورځی تیری شوی او شه دردو بایدی چی وی هغه پای ته ورسیدلې تو امینې په اوښلنو سترګو سره د طاوس د تخت د خونی د کلی د ورکیدو عرض ولوړ حضور ته وکړ . شـاه لـه قهره شخه سور و شین شو دستی ئې د هغی خونی دروازه ماته کړه او تخت ئې په هغه وران حالت سره ولیـدی د امینې د اکا د زوی په تیښته سره هم خبر شو او دا پـوره ورته معلومه شوه چی دا کار پېلهٔ دې شخه بل چـا نـدی کـړی دستی کورنه راغی او د خپلی هغی ګرانی معشوقې سینه ئې په تیره خنجر سره سوری سوری کـړه .



پیغله عزیزه رشاد

# والنتینا گاگانووا

د کاراوزحمت کښلوسره ددې ښځې علاقې اواعتماد دلته او سته رښتیې ور کښلی دی اوددې په نظر کې ګردسره دارادې اوعقیدې تزازل معنی نه لري، له دې کبله به نې په هره ځانګه کې چې قدم ایښووی په یوه حیرت ناکه ډول سره به نې دهغې برخې تولیدات ډېر بدل بزی او ډېر مخته ک به نې حتمي ؤ.

والیا په ۱۹۳۲ ع کې دا ځېږوېه کلې کې په یوه کار ګره کورنۍ کې نړۍ ته راغله. کله چې جنګ شروع شو د ګاګانووا کورنۍ هم دجنګ دزحمتو، کړاؤ، محرومیتو او مشکلاتو څخه بې برخې پاته نه سوله.

په ۱۹۴۲ ع کې دوالیا پلار دږوف دسیمې په جګړه کې ووژل شو مورنې دېنځه ورو کو سره پاته شوله چې ها غې لورنې یعنی لیوشا په هغه وخت کې ۱۲ کلنې اووالیا اس کلنې وه. دوالیامور دخپل ژوند دېرمخ بیولو دپاره په یوه کلخوز کې کار کوی. لیوشا دزده کړې

دپاره په یوه مسلکې ښوونځي کې وکالغین ته ولاړه او والیا یعنی د کورنۍ ځېږه غـړی د ورو کو بچیانو ، داو بواوار کو راوړل اودغواؤ ګتل پرغاړه واخستل. لـه دې کبله دوالیا تعلیمات لـکه څرنګه چې دې غوښتل بشپړ نـه سول او دا پرپالو نه سوله چې هغه شیان زده کړی کوم چې دې نې هیله درلوده.

په ۱۹۴۸ کې والیاد کار زده کو نکې په حیث دور ښلو کارخانې ته داخله سوه. په لومړی سر کې که څه هـم د ډېـرو مشکلاتو سره مخامخ شوله ولې په اخیره کې ددې ښځې اراده په دې کار کې دا بریالی کړله او دخوا بانو ددلی لارښوونې نې پرغاړه واخستله.

همکارانو نې دوالیا سره ډېره علاقه درلوده ځکه چې دا ساده باشاطه نجلۍ دخپلوا نډیوالانو سره ډېره صمیمي وه چې تواو یه سختو کړیو کې دې ته مراجعه کوله.

کله چې د کار دلوړ بیولو اود ماشین د کار د نصاب په باره کې نهضت مینځ ته راغلی دی نجلۍ په طلائي اوډلوو ښځینو او د چیټ په ساده کمیسه سره په ټینګه فعالیت پیل و کړ.

په لږ وخت کې د ګاګانووا تر لاس لاندې دلې په پرمخ تللو دلو کې اومړی مقام لاس ته وروستې حتی د کار خانې سابقه داره او پخوانی کاریګران به هم والیا ته راتلل چې ددې څخه تجربې زده کړی.

دوالیا څانګې دوړ پښلو په برخه کې بېخي تر تصور لوړ د پرمختګ وکړې. په دې وخت کې والیا یو عجب تصمیم ونیوی او د نورو کارېګرانو د مرستې دپاره و وروسته پاته ډلې ته داخله سوه څکه چه دې فعالې کارېګرې غوښتل په عمومي صورت سره دوړ پښلو د تولو ډلو تولیدات ډېر سي.

د هرې څانګې د پرمختګ سبب چې والیا په کار پېکښې کاوه؛ داؤ چې ګاګانووا تر هرشي دمخه و کار او انسان ته ژوره عقیده او اعتماد لري او وائي چې د تشویق او ترغیب په اثر سره کېدلای شي چې هرڅوک دې فعال کړه سي او دا عقیده تل ددې سره مرسته کوي چې د کارېګرانو د بارهٔ سمه لار غوره کړې ده.

ګاګانووا تل په صمیمیت سره خپلو انډیوالو نجونو ته لارښوونه کول والیا چې په هرې د منګانه ورتلله د نورو نواقصو سره به مخامخ کېدله او په ښه ډول به ئې تولې نیمګړتیاوې لیرې کولې.

دا د یو کار پرمختګ په ښه خوښې محیط او مباحثو مذاکره کې بولي او هره ورځ د خپلو همکارانو سره مذاکره کوي او ددوی مشکلات حل کوي.

پدې ډول په هماغه لومړي هفته کې ددې د څانګې تولیدات په بېخې قابل توجه ډول ډېر والی موندی.

دې حرفه ئې ښوونځی بشپړ کړی دی او په تولهٔ معنی یوهٔ کامله او لایقه کارېګره ده.

هره ډله چې دوالیا تر نظر لاندې مخ ته ځي. هغه ډله خپلو مرستیالو ته پرېږدي او وروسته پاته ډلې ته ورځي. دې تولې ډلې په یوه صمیمي محیط کې په مسابقه کې سره اچولې دي، والیا عزم لري چې خپل دې کار ته ادامه بسي ورکړي.

څکه دوړو کې له دراوړو سره سي کېدلای چې تحصیلاتو ته ادامه بسي ورکړي او دا کار ئې د بلې موقع دپاره پرې ایښی دی.

داقهرمانه او ځوانه دوړ پښونکې په خپل کار کې په ښه ډول د تقدیر او ستاینې مورد ګرځېدلې ده.

په ۱۹۵۹ کې د شوروي اتحاد رئیسه هیئت ددې او دو خدمتو او د شوروي تولنې و ګټو ته د فداکار یو په مقابل کې چې په داوطلبانه ډول د پرمختللې ډلې څخه وروسته پاتې ډلې ته ځي او ددې د برجسته ابتکارو څخه د تقدیر دپاره چې د کار د نهضت دپاره ئې اوی کار کړی دی. د رئیسه هیئت د فرمان سره سم مېرمن والنتینا ګاګانووا د نساجې د کمبینات وړ پښلو د کارخانې د ډلې مشرې ته د سوسیالستي کار د قهرماني عنوان ورکول شوی دی.

## ژوند د مختلفو خلکو په عقیده

د عمرزي ژباړه
اولیکنه

پښتانه وائي: ژوند [ ښځې او ځمکې ] دی .
برنارډ شاو د انګلستان نامتو لیکوال وائي [ وړانګه ] ده .
ناپلیون وائي [ کلا ] ده .
هنلي د انګلستان یو نقاد وائي [ دود ] دی .
قولکالارون د هسپانیې شاعر او نور خشیخ رال وائي [ خوب و خیال ] دی .
اسوئفت د ایرلینډ مشهور انګلیس لیکوال وائي [ یو د خواشینۍ ننداره تون ] دی .
ریچارډ برتون د تانګانیکا کاشف وائي: [ زینه ] ده .
شیخ سعدي وائي [ واوره ] ده .
اندرسن د ډنمارک لیکوال او د دنیا نور ډېر خلک وائي چې: [ افسانه ] ده .

**د ژوند په باره کې څو نور نظریات او متلونه :-**

ژوند هغه ګل دی چې بې لاس وهلو خزانیږي .
ژوند لکه کوچنیوالی داسې دی تر څو چې بیده نسي باید زانګو ئې وزانګول سي .
ژوند لکه ناتراشه ډبره چې سړی وغواړي هر ډول شکل ور کې ور کولای ئې سي .
ژوند هغه وخت خپل مفهوم بایللی که هنر نه وي ورسره ملګری .
ژوند چې خوږ دی د مرګ د بیری .
ژوند د کوچنیو شیانو مجموعه ده .

